

هغه ضروري

# واجبات

چې په هر مسلمان او مسلمانې يې پېژندل لازم دي

د شيخ

محمد بن عبد الوهاب (رحمه اللّه)

له ويناو څخه




الدولة الإسلامية

هغه ضروري

# واجبات

## چې په هر مسلمان او مسلمانې یې پیژندل لازم دي


د شیخ

محمد بن عبد الوهاب (رحمه الله)

له ویناو څخه




بِسۡمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحۡمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ

## مقدمة

الحمدلله رب العالمين، والصلاة والسلام على نبينا محمد وعلى آله وأصحابه أجمعين، والتابعين ومن تبعهم بإحسان إلى يوم الدين....أمابعد:

**هغه درې اصول چې په هر مسلمان یې علم فرض دی**

د خپل رب پیژندل، د خپل دین پیژندل او د خپل نبي محمد صلى الله عليه وسلم پیژندل :

**که تاته وویل شي چې رب دې څوک دی؟**

نوته ووایه چې رب مې الله تعالی دی کوم چې په خپلو نعمتونو زما او دټول مخلوق پالنه کوي، هغه زما معبود دی او د هغه نه بغیر زما بل معبود نشته.

**که چرته ستا څخه پوښتنه وشي چې دین دې څه دی؟**

نو ته ورته ووایه چې دین مې اسلام دی.

**او اسلام دیته وایي:**

الاسْتِسْلامُ للهِ بِالتَّوْحِيدِ، وَالانْقِيَادُ لَهُ بِالطَّاعَةِ، وَالْبَرَاءَةُ مِنَ الشِّرْكِ وَأَهْلِهِ.

**ژباړه** : الله تعالی ته په توحید تسلمېدل، هغه ته په تابعدارئ غاړه ایښودل او دشرک اومشرکانو نه بیزاري کول.

**که تاته وویل شي چې ستانبي څوک دی؟**

نوته ورته په ځواب کې ووایه: **محمد** ابن عبدالله بن عبدالمطلب بن هاشم زمونږ نبي دی صَلَّىٰٱللَّهُعَلَيۡهِوَسَلَّمَ.

**د دين بنياد او قاعده دوه شيان دي:**

**لمړی:** يواځې د الله تعالى په عبادت امر كول چې هيڅ شريک ورسره نه وي، دغې ته بيا خلک هڅول، پدغه لار کې بيا دوستي کول او چې څوک دغه عبادت نه کوي هغه ته کافر ويل.

**دويم:** د الله په عبادت کې د شرک څخه خلک ويرول، پدې کار کې سختي کول، دښمني کول او چې څوک شرک کوي هغه ته کافر ويل.

## فصل

## د کلمې طيبې «لا إله الا الله» شرطونه

**لمړی شرط:** د کلمې په معنی پوهيدل د نفي او اثبات له مخې(يعنې چې پدې کلمه کې څه نفي شوي په هغې پوهيدل او د څه چې اثبات شوی په هغې ځان پوهول).

**دوهم شرط:يقين** (چې په کلمه په پوره توګه پوه شې، داسې چې د شک لپاره پکې کوم ځای پاتې نه شي).

**دريم شرط: اخلاص** (چې دشرک منافي دی).

**څلورم شرط :** رښتيا (چې د درواغو منافي وي).

**پنځم شرط**: د دې کلمې او هغه څه سره محبت کول چې دا کلمه پرې دلالت کوي او بيا پرې خوشحاله کيدل.

**شپږم شرط**: د دې کلمې حقوقو ته غاړه ايښودل او دغه حقوق: واجب عبادتونه دي؛ بايد په اخلاص سره يې وکړې او د الله رضا پرې ولټوې.

**اووم شرط:** قبول (قبلول) پداسې شکل سره چې منافي وي د نه منلو.

## د دې شرطونو دلايل

د الله تعالى د کتاب او د رسول اللهﷺ د سنت څخه:

**د علم دليل:**

الله تعالى فرمايي:﴿ فَٱعۡلَمۡ أَنَّهُۥ لَآ إِلَٰهَ إِلَّا ٱللَّهُ وَٱسۡتَغۡفِرۡ لِذَنۢبِكَ وَلِلۡمُؤۡمِنِينَ وَٱلۡمُؤۡمِنَٰتِۗ ﴾[محمد: ١٩]

**ترجمه:** پوه شه چې نشته بل لائق د عبادت مګر يواځې الله تعالى دى او د خپلې ګناه او هم د مؤمنانو نارينه او ښځينه و لپاره بښنه غواړه.

او الله تعالى فرمايي:﴿ إِلَّا مَن شَهِدَ بِٱلۡحَقِّ وَهُمۡ يَعۡلَمُونَ ﴾[الزخرف: ٨٦]

**ترجمه:** مګر هغه څوک چې د حق ګواهي وکړي او دوى پوهيږي(په مقصد د دې ګواهۍ)، دلته د (الحق) نه مراد (لا اله الا الله) کلمه ده.

يَعۡلَمُونَ: مطلب په زړه كې پوهيږي چې د دې كلمې معنا او حقيقت څه دى.

**د سنت څخه دليل:** درسول الله ﷺ دسنت څخه دغه صحيح ثابت حديث چې عثمان بن عفان رضي الله عنه روايت كړى وايي: رسول الله ﷺ فرمايلي: « مَنْ مَاتَ وَهُوَ يَعْلَمُ أَنْ لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ دَخَلَ الْجَنَّةَ »[1]

**ترجمه** : څوک چې مړ شو او پدې پوهيده چې نشته بل لائق دعبادت مګر يو الله تعالى دى نو دابه جنت ته ننوځي.

(١) رواه مسلم وغيره

**د يقين دليل:**

الله تعالی فرمايي: ﴿إِنَّمَا ٱلْمُؤْمِنُونَ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ بِٱللَّهِ وَرَسُولِهِۦ ثُمَّ لَمْ يَرْتَابُوا۟ وَجَٰهَدُوا۟ بِأَمْوَٰلِهِمْ وَأَنفُسِهِمْ فِى سَبِيلِ ٱللَّهِ ۚ أُو۟لَٰٓئِكَ هُمُ ٱلصَّٰدِقُونَ﴾[الحجرات: ١٥]

**ترجمه:** يقينا پوره مؤمنان هغه څوک دي چې په الله تعالی او رسول ايمان راوړي اوبيا پکې هيڅ شک ونکړي او په خپلو مالونو او نفسونو د الله تعالی په لار کې جهاد کوي، همدغه خلک رښتيني دي.

په آيت کې په الله او د هغه په رسول ﷺ د ايمان لپاره دا شرط دی چې دوی به پکې شک نه وي کړی، ځکه په ايمان کې شک کونکی د منافقانو څخه وي.

**د سنت نبوي څخه دليل:** دأبوهريره رضي الله عنه نه روايت دی وايي چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي: (أشهد أن لا

إله إلا الله وأني رسول الله ، لا يلقى الله بهما عبد غير شاك فيهما إلا دخل الجنة)[٢]

**ترجمه**: زه ګواهي کوم چې نشته لائق د عبادت مګر يو الله تعالى دى، او زه دالله تعالى رسول يم، پدې كلمه هيڅ يو بنده د الله تعالى سره نه **مخامخ** كيږي مګر جنت ته به داخل شي.

**په يو روايت كې داسې هم راغلي**: كه كوم بنده الله تعالى سره پدې كلمه پداسې حال كې **مخامخ** شي چې شک یې پکې نه وي كړى نو د جنت څخه به منع نكړى شي.

او د أبو هريرة رضي الله عنه په يو اوږد حديث كې راغلي: « د دې ديوال څخه اخوا چې د هر هغه چا سره **مخامخ** شوې چې د (لا اله الا الله) ګواهي یې كوله پداسې اندازه چې په زړه كې یې پرې يقين وو، نو د جنت زيرى وركړه ».

(٢) رواه مسلم

## د اخلاص دلیل:

دلیل: الله تعالی فرمايي: ﴿ أَلَا لِلَّهِ ٱلدِّينُ ٱلْخَالِصُ ﴾[الزمر: ٣]

**ترجمه** : خبردار د الله تعالی لپار خالص دین دی.

او دالله تعالی دا قول: ﴿ وَمَآ أُمِرُوٓاْ إِلَّا لِيَعْبُدُواْ ٱللَّهَ مُخْلِصِينَ لَهُ ٱلدِّينَ حُنَفَآءَ وَيُقِيمُواْ ٱلصَّلَوٰةَ وَيُؤْتُواْ ٱلزَّكَوٰةَ ۚ وَذَٰلِكَ دِينُ ٱلْقَيِّمَةِ ﴾[البينة: ٥]

**ترجمه**: او دوی ته امر نه وو شوی، مګر د دې خبرې چې دوی دې د الله تعالی لپاره خالص(صفا)عبادت وکړي چې مایله وي د کفر نه اسلام ته، او د لمونځ پاپندي دې وکړي او زکاة دې ورکړي او همدا صحیح دین دی.

**د سنت نه دلیل**: د ابو هریره رضي الله عنه نه روایت دی چې رسول الله صَلَّىٱللَّهُعَلَيۡهِوَسَلَّمَ فرمایلي: «أَسْعَدُ النَّاسِ بِشَفَاعَتِي يَوْمَ الْقِيَامَةِ مَنْ قَالَ: لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ خَالِصًا مِنْ قِبَلِ نَفْسِهِ» (٣)

---

(٣ )رواه البخاری

**ترجمه** : دقیامت په ورځ به زما په شفاعت هغه سړی مشرف کیږي چې (لا اله الا الله) یې د خپل نفس له پلوه په اخلاص سره ووایي.

په یو صحیح حدیث کې د عتبان بن مالک رضي الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي:« الله عزوجل په اور هغه څوک حرام کړی چې د غه کلمه ووایي:" لا إلٰه إلا الله"او پدغه حالت د الله عزوجل سره مخ لټوي ».

امام نسائي په (الیوم واللیلة) کې د دوه صحابه کرامو رضي الله عنهم څخه روایت کوي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي:« چا چې دا کلمه وویله: " لا إلٰه إلا الله وحده لا شریك له، له الملك، وله الحمد، وهو على كل شيء قدير" پدې شرط چې په زړه کې یې پرې اخلاص موجود وو او ژبې یې د دغه اخلاص تصدیق کوو، نو الله عزوجل ورته د اسمان دروازه خلاصه کړي ترڅو په ځمکه کې د دغې کلمې ویونکی وګوري او هغه بنده

چې الله تعالی ورته وګوري د دې حقدار دی چې الله عزوجل ورته د هغه سوال (هره غوښتنه) ورکړي».

**د ربښتیا دلیل:**

الله تعالی فرمايي: ﴿ الٓمٓ ۝١ أَحَسِبَ ٱلنَّاسُ أَن يُتۡرَكُوٓاْ أَن يَقُولُوٓاْ ءَامَنَّا وَهُمۡ لَا يُفۡتَنُونَ ۝٢ وَلَقَدۡ فَتَنَّا ٱلَّذِينَ مِن قَبۡلِهِمۡۖ فَلَيَعۡلَمَنَّ ٱللَّهُ ٱلَّذِينَ صَدَقُواْ وَلَيَعۡلَمَنَّ ٱلۡكَٰذِبِينَ ﴾[العنكبوت]

**ترجمه:** الٓمٓ، آیا خلک دا ګومان کوي چې دوی به پریښودل شي صرف پدې خبره چې دوی وایي مونږ ایمان راوړی! او په دوی به امتحان نه کېږي؟، یقینا مونږ د دوی نه په مخکنو خلکو امتحان کړی وو، نو الله تعالی به معلوم کړي هغه خلک چې ربښتوني دي او هغه خلک چې دروغژن دي.

او د الله دا قول: {وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَقُولُ آمَنَّا بِاللَّهِ وَبِالْيَوْمِ الْآخِرِ وَمَا هُمْ بِمُؤْمِنِينَ*يُخَادِعُونَ اللَّهَ وَالَّذِينَ آمَنُوا وَمَا

يَخْدَعُونَ إِلَّا أَنْفُسَهُمْ وَمَا يَشْعُرُونَ * فِي قُلُوبِهِمْ مَرَضٌ فَزَادَهُمُ اللَّهُ مَرَضًا وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ بِمَا كَانُوا يَكْذِبُونَ} [البقرة: ٨-١٠].

**ترجمه:** او بعضې د خلکو نه هغه دې چې وايي مونږ په الله او د قيامت په ورځ ايمان راوړی، خو په حقيقت کې دوی مؤمنان نه وي، دوی د الله تعالی او مؤمنانو سره دوکه کوي، ليکن په حقيقت کې دوی دوکه نه کوي مګر د خپل ځان سره خو دوی نه پوهيږي، د دوی په زړونو کې د نفاق مرض دی، نو الله تعالی زيات کړ د دوی مرض او د دوی لپاره دردناک عذاب دی، په سبب د هغه درواغو چې دوی ويل.

**او دسنت نه دليل:**په صحيحينو کې دمعاذ بن جبل رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حديث:رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي: «مَا مِنْ أَحَدٍ يَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَأَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ صَادِقًا مِنْ قَلْبِهِ إِلَّا حَرَّمَهُ اللَّهُ عَلَى النَّارَ».

**ترجمه:** داسې څوک نشته چې د دې کلمې ګواهي کوي چې لااله الاالله محمد رسول الله، او د زړه نه ريښتونې وي، مګر الله تعالی به پرې د جهنم اور حرام کړي.

**د محبت دليل:**

دقرآن کريم نه دليل: الله تعالی فرمايي: ﴿ وَمِنَ ٱلنَّاسِ مَن يَتَّخِذُ مِن دُونِ ٱللَّهِ أَندَادًا يُحِبُّونَهُمۡ كَحُبِّ ٱللَّهِۖ وَٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ أَشَدُّ حُبًّا لِّلَّهِۗ ﴾[البقرة: ١٦٥]

**ترجمه:** او بعضې خلک دالله تعالی نه بغير نور شريکان په محبت سره نيسي، داسې محبت ورسره کوي چې صرف دالله تعالی سره پکار دی، او مؤمنان ډير زيات محبت لرونکي دي د الله تعالی سره.

او د الله تعالی دا قول: {يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا مَنْ يَرْتَدَّ مِنْكُمْ عَنْ دِينِهِ فَسَوْفَ يَأْتِي اللَّهُ بِقَوْمٍ يُحِبُّهُمْ وَيُحِبُّونَهُ أَذِلَّةٍ عَلَى

الْمُؤْمِنِينَ أَعِزَّةٍ عَلَى الْكَافِرِينَ يُجَاهِدُونَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَلَا يَخَافُونَ لَوْمَةَ لَائِمٍ} [المائدة: ٥٤].

**ترجمه**: اى مؤمنانو څوک چې په تاسو کې مرتد شو د خپل دين څخه نو زر دی چې الله عزوجل به داسې يو قوم راولي چې الله عزوجل به د هغوی سره او هغوی به د الله عزوجل سره محبت کوي، د مؤمنانو په مقابل کې به کمزوري(عاجزي کونکي) وي او د کافرو په مقابل کې زورور(سختي کونکي) وي د الله په لار کې به جهاد کوي او د ملامت کونکي د ملامتيا څخه به نه ويريږي.

**د سنت نبوي نه دليل**: دبخاري اومسلم حديث دی په روايت دانس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وايي چې رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايلي دي:« ثَلاَثٌ مَنْ كُنَّ فِيهِ وَجَدَ بِهِنَّ حَلاَوَةَ الإِيمَانِ: أَنْ يَكُوْنَ اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَحَبَّ إِلَيْهِ مِمَّا سِوَاهُمَا، وَأَنْ يُحِبَّ الْمَرْءَ

لاَ يُحِبُّهُ إِلاَّ لِلَّهِ، وَأَنْ يَكْرَهَ أَنْ يَعُودَ فِي الْكُفْرِ بَعْدَ أَنْ أَنْقَذَهُ اللَّهُ مِنْهُ ، كَمَا يَكْرَهُ أَنْ يُقْذَفَ فِي النَّارِ»

**ترجمه**: دري شيان داسې دي چې كه په چا كې پيدا شول د ايمان خوند (مزه) به وڅكي:(**لمړی**) داچې الله تعالی او د هغه رسول صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته ترټولو زيات ګران(**محبوب**) وي، او (**دويم**)داچې ديو تن سره يواځې دالله تعالی لپاره محبت كوي، او(**دريم**) دا چې كفرته بيرته ستنيدل ورته داسې بد ښكاري لكه اور ته غورزيدل چې بد ګڼي.

**د انقياد (غاړه ايښودلو) دليل:**

الله تعالی فرمايي:﴿ وَمَن يُسْلِمْ وَجْهَهُۥٓ إِلَى ٱللَّهِ وَهُوَ مُحْسِنٌ فَقَدِ ٱسْتَمْسَكَ بِٱلْعُرْوَةِ ٱلْوُثْقَىٰ ﴾ [لقمان: ٢٢]

**ترجمه**:او څوک چې خپل مخ الله تعالی ته تسليم كړي، پداسې حال كې چې په عمل كې هم پوره تابعدار وي، نو ده په په مضبوطه كړۍ منګولې ولګولې.

او د الله تعالى دا وينا: {وَمَنْ أَحْسَنُ دِينًا مِمَّنْ أَسْلَمَ وَجْهَهُ لِلَّهِ وَهُوَ مُحْسِنٌ} [النساء: ١٢٥].

**ترجمه**: او څوک ډېر خايسته دين والا دى د هغه چا څخه چې خپل مخ يې الله تعالى ته تسليم كړى وي او هغه نيكو كار وي(د احسان په درجه كې).

او د الله تعالى دا وينا:{وَمَنْ يُسْلِمْ وَجْهَهُ إِلَى اللَّهِ وَهُوَ مُحْسِنٌ فَقَدِ اسْتَمْسَكَ بِالْعُرْوَةِ الْوُثْقَى} [لقمان: ٢٢]: أي بـ«لا إله إلا الله».

**ترجمه**: او څوک چې خپل مخ الله تعالى ته تسليم كړي او هغه نيكو كار وي( د احسان په درجه كې)، نو يقيناده په هغه كلكه رسۍ منګولې ولګولي، يعني په لا اله الا الله.

او د الله تعالى دا وينا:{فَلَا وَرَبِّكَ لَا يُؤْمِنُونَ حَتَّى يُحَكِّمُوكَ فِيمَا شَجَرَ بَيْنَهُمْ ثُمَّ لَا يَجِدُوا فِي أَنْفُسِهِمْ حَرَجًا مِمَّا قَضَيْتَ وَيُسَلِّمُوا تَسْلِيمًا} [النساء: ٦٥].

**ترجمه:** داسې نده! زما دې ستا په رب قسم وي چې دوی مؤمنان کيدی نشي، ترهغې چې تا فيصله کوونکی ونه ومني په هغه څه کې چې د دوی ترمينځ واقع کيږي او بيا په خپل زړه کې کومه تنګي محسوسه نکړي ستا د فيصلې په مقابل کې او په پوره توګه تسليم شي.

**د سنت څخه دليل:** رسول الله صَلَّىٱللَّهُعَلَيۡهِوَسَلَّمَ فرمايي: «لا يؤمن أحدكم حتى يكون هواه تبعًا لما جئت به».

**ترجمه:** په تاسو کې يو تن ترهغې مؤمن کيدی نشي، ترڅو چې د هغه خواهش زما د راوړي دين تابع نشي.

او همدا د غاړه ايښودو او انقياد پوره کيدل او اصلي هدف دی.

**د قبلولو دليل:**

د الله تعالى دا قول: {وَكَذَلِكَ مَا أَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ فِي قَرْيَةٍ مِنْ نَذِيرٍ إِلَّا قَالَ مُتْرَفُوهَا إِنَّا وَجَدْنَا آبَاءَنَا عَلَى أُمَّةٍ وَإِنَّا عَلَى آثَارِهِمْ مُقْتَدُونَ * قَالَ أَوَلَوْ جِئْتُكُمْ بِأَهْدَى مِمَّا وَجَدْتُمْ

عَلَيْهِ آبَاءَكُمْ قَالُوا إِنَّا بِمَا أُرْسِلْتُمْ بِهِ كَافِرُونَ * فَانْتَقَمْنَا مِنْهُمْ فَانْظُرْ كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُكَذِّبِينَ}[الزخرف: ٢٣-٢٥].

**ترجمه:** او همدغه شان مونږ په هيڅ كلي كې پيغمبر ندی راليږلی مګر د هغه كلي مستو خلكو به ويل: يقينا مونږ موندلي خپل پلرونه په يو خاص دين او مونږ د هغوی په نقشقدم روان يو، پيغمبر ورته وويل: آيا كه ما تاسو ته داسې دين راوړی وي چې د هغه دين نه ډير په سمه وي چې تاسو پرې خپل پلرونه موندلي؟ كفارو وويل: مونږ په هغه دين چې تاسو راوړی كفر كونكي يو، نو مونږ د هغوی څخه بدله واخيسته، نو ته وګوره چې څرنګه شو انجام د دروغژنو؟.

او د الله تعالى دا وينا:﴿ إِنَّهُمْ كَانُوٓاْ إِذَا قِيلَ لَهُمْ لَآ إِلَٰهَ إِلَّا ٱللَّهُ يَسْتَكْبِرُونَ ﴿٣٥﴾ وَيَقُولُونَ أَئِنَّا لَتَارِكُوٓاْ ءَالِهَتِنَا لِشَاعِرٍ مَّجْنُونٍ ﴾[الصافات: ٣٥ – ٣٦]

**ترجمه**: دغه خلک، کله چې دوی ته (دا کلمه)وویل شي چې نشته لايق دعبادت مګر يو الله تعالی دی نو دوی تکبر کوي، او وايي آيا مونږ خپل معبودان د يو ليوني شاعر لپاره پرېږدو؟!.

**د سنت څخه دليل**: هغه حديث چې په صحيح بخاري کې دی، د ابو موسیرَضِيَٱللَّهُعَنْهُ څخه روايت دی چې رسول اللهصَلَّىٱللَّهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ فرمايي: « د هغه دين او علم مثال چې زه پرې الله تعالی رالیږلی يم لکه په يوه ځمکه چې ډېر باران وشي: نو بعضې ځمکه پکې ښه وي اوبه جذب کړي او شينکي او ډير واښه راشنه کړي او بعضې پکې کلکه ځمکه وي چې اوبه يې په سر ټينګې شي نو الله تعالی پرې خلکو ته ګټه ورسوي، هغوی ترې اوبه وڅښي، خپلو څاروو ته يې هم ورکړي او فصلونه پرې هم اوبه کړي او يو بل ډول ځمکې ته هم دغه باران ورسي چې هغه خويه (چړنده) ځمکه وي چې نه اوبه ټينګوي او

پرې شينکې راټوکيږي، نو دغه مثال د هغه چا دی چې الله تعالی ورته په دين کې پوهه ورکړې وي او هغه څه چې زه پرې الله ليږلی يم ورته ګټه رسولې وي، نو پوه شي او عمل پرې هم وکړي او د هغه چا مثال هم دی چې په دين سر پورته نکړي او هم د الله هغه هدايت او دين قبول نه کړي چې الله پرې زه راليږلی يم ».

## فصل

## داسلام نواقض

**اول ناقض: الله تعالی سره په عبادت کې شرک کول.**

الله تعالی فرمايلي: ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ لَا يَغۡفِرُ أَن يُشۡرَكَ بِهِۦ وَيَغۡفِرُ مَا دُونَ ذَٰلِكَ لِمَن يَشَآءُ ﴾[النساء: ١١٦]

**ترجمه**:يقينا الله تعالی نه ببښي دا (ګناه) چې شرک ورسره وشي اوببښي نور ګناهونه چاته يې چې خوښه شي.

همداشان الله تعالى فرمايي: ﴿إِنَّهُۥ مَن يُشۡرِكۡ بِٱللَّهِ فَقَدۡ حَرَّمَ ٱللَّهُ عَلَيۡهِ ٱلۡجَنَّةَ وَمَأۡوَىٰهُ ٱلنَّارُۖ وَمَا لِلظَّٰلِمِينَ مِنۡ أَنصَارٖ﴾ [المائدة:٧٢]

**ترجمه:** يقينا څوک چې د الله تعالى سره شرک وکړي، نو الله تعالى پده جنت حرام کړي او د ده ځای اور دی، اونشته د ظالمانو لپاره څوک مددګار.

د شرك له بيلګو څخه: د غير الله لپاره حلالکه کول؛ لکه د پيريانو او زيارتونو لپاره حلالکې کول.

**دوهم ناقض:** د بنده او د الله تعالى ترمينځ واسطې جوړول، د هغوی نه سوال کول اوپه هغوی توکل (اعتماد) کول نودا ډول بندګان په اجماع سره کافر دي.

**دريم ناقض:** څوک چې اصلي کافر (مشرک) ته کافر نه وايي او يايې په کفر کې شک کوي او يا د کفارو دين صحيح بولي.

**څلورم ناقض:** څوک چې دا عقیده وساتي چې د بل چا دین د محمد ﷺ د دین نه بهتر دی او یا د بل چا حکم (او فیصلې) د رسول الله ﷺ د حکم نه بهترې دي ، نو دغه انسان کافر دی ، لکه بعضې خلک چې دطواغیتو فیصلې دقرآن اوسنت نه بهترې بولي.

**پنځم ناقض:** چا چې د نبي ﷺ د راوړي شریعت څخه یو شي سره هم بغض وکړ نو دا په اتفاق د ټولو علماؤ کافر شو، اګر که عمل پرې هم کوي.

**شپږم ناقض:** چاچې د محمد ﷺ د شریعت په یو حکم یا د هغې په ثواب اوسزا پورې مسخرې وکړې نو دا کافر شو.

دلیل د الله تعالی داقول دی: ﴿ وَلَئِن سَأَلْتَهُمْ لَيَقُولُنَّ إِنَّمَا كُنَّا نَخُوضُ وَنَلْعَبُ ۚ قُلْ أَبِاللَّهِ وَآيَاتِهِ وَرَسُولِهِ كُنتُمْ تَسْتَهْزِئُونَ ﴿٦٥﴾ لَا تَعْتَذِرُوا قَدْ كَفَرْتُم بَعْدَ إِيمَانِكُمْ ۚ ﴾[التوبة: ٦٥- ٦٦]

**ترجمه:** که چرته له دوی څخه پوښتنه وکړې (چې داکار مو ولې کولو؟)نو دوی به درته خامخا ووايي چې مونږ خو ټوکې کولې، ته ورته ووایه چې آیا په الله تعالی، د هغه په آیتونو او رسول پورې تاسو مسخرې کوی؟ اوس عذرونه مه وړاندې کوئ تاسو دایمان نه وروسته کافر شوي یاست.

**اووم ناقض:** جادو(سحر) پدې کې د محبت او بندیدو کوډې هم شاملې دي نو که چا جادو یا کوډې وکړې یاپرې خوښ شو نو داسړی کافر دی.

الله تعالی فرمايي:(وَمَا هُمْ بِضَارِّينَ بِهِ مِنْ أَحَدٍ إِلَّا بِإِذْنِ اللَّهِ وَيَتَعَلَّمُونَ مَا يَضُرُّهُمْ وَلَا يَنْفَعُهُمْ)[البقرة: ١٠٢]

**ترجمه:** او دوی ضرر رسونکي نه وو پدې(سحر) سره هیچاته مګر د الله په حکم سره او دوی به زده کول هغه څه چې دوی ته به یې ضرر رسوو او ګټه به یې ورته نه رسوله.

**اتم ناقض:** د مسلمانانو پرخلاف د کفارو سره مرسته کول.

دليل:دالله تعالی داقول دی: ﴿ وَمَن يَتَوَلَّهُم مِّنكُمْ فَإِنَّهُۥ مِنْهُمْۗ إِنَّ ٱللَّهَ لَا يَهْدِى ٱلْقَوْمَ ٱلظَّٰلِمِينَ ﴾[المائدة: ٥١]

**ترجمه** :ځوک چې د دې (یهود او نصاری) سره دوستي وکړي پس یقینا دا هم د هغوی د جملې نه دی، یقینا الله تعالی هدایت نه کوي قوم ظالمانو ته .

**نهم ناقض:** ځوک چې دا عقیده وساتي چې بعضې خلک د محمدصَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دشریعت نه داسې وتلی شي، لکه خضرعَلَيْهِ ٱلسَّلَامُ چې د موسيعَلَيْهِ ٱلسَّلَامُ د شریعت نه وتلی وو نو دا انسان کافر دی.

**لسم ناقض:** د الله د دین نه داسې اعراض کول چې نه یې زده کوي او نه پرې عمل کوي.

دليل دالله تعالی داقول دی: ﴿ وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّن ذُكِّرَ بِـَٔايَٰتِ رَبِّهِۦ ثُمَّ أَعْرَضَ عَنْهَآۚ إِنَّا مِنَ ٱلْمُجْرِمِينَ مُنتَقِمُونَ ﴾[السجدة: ٢٢]

**ترجمه:** اوڅوک د هغه چا نه غټ ظالم دی چې هغه ته د الله تعالی د آيتونو وعظ وکړي شي او بيا دا له هغې څخه مخ واړوي، يقينا مونږ د مجرمانو نه بدله اخيستونکي يو.

**ملاحظه:** پدې نواقضو کې بغير له مُکره نه ټول مکلفين داخل دي که په ټوکو کې وي او که د رښتيا په حالت کې وي او دا ټول ډير لوی خطر لري او ډير زيات پکې خلک واقع کيږي، نو مسلمان له پکار دي چې ځان ترې وساتي او په خپل ځان لدې نواقضو څخه ويريږي، د الله تعالی څخه پنايي غواړو چې مونږ د خپل غضب واجبونکو ګناهونکو څخه وساتي او د هغه د سخت عذاب څخه.

## توحيد او اقسام يې

**توحيد:** الله تعالى په الوهيت، ربوبيت او اسماء او صفاتو كې يوكول .

### توحيد په درې قسمه دی

### ① توحيد الربوبيت:

الله تعالى په خپلو ټولو كارونو كې يواځې كڼل لكه: رزق وركول ، ژوندي كول، مړه كول، نفع اوضرر رسول وغيره.

دا هغه توحيد دی چې د رسول اللهﷺ د زمانې كفارو پرې اقرار كړی وو، ليكن رسول اللهﷺ ورسره جنګ وكړ او هغوی يې په اسلام كې داخل نه كړل او د هغوی وينې او مالونه يې حلال وبلل.

دليل: الله تعالى فرمايي: ﴿ قُلۡ مَن يَرۡزُقُكُم مِّنَ ٱلسَّمَآءِ وَٱلۡأَرۡضِ أَمَّن يَمۡلِكُ ٱلسَّمۡعَ وَٱلۡأَبۡصَٰرَ وَمَن يُخۡرِجُ ٱلۡحَيَّ مِنَ ٱلۡمَيِّتِ وَيُخۡرِجُ ٱلۡمَيِّتَ مِنَ ٱلۡحَيِّ وَمَن يُدَبِّرُ ٱلۡأَمۡرَۚ فَسَيَقُولُونَ ٱللَّهُۚ فَقُلۡ أَفَلَا تَتَّقُونَ ﴾[يونس: ٣١]

**ترجمه**:ته ورته ووايه چې څوک تاسوته داسمان اوځمکې نه رزق درکوي، یاڅوک دي چې غوږونه اوسترګې د هغه په واک کې دي او څوک ژوندي د مړي اومړي د ژوندي نه راباسي اوڅوک د کار تدبیر کوي، نو زر دی چې دوی به ووايي: الله تعالی(دغه کارونه کوي) نو ته ورته ووایه چې آیا تاسو د عقل نه کار نه اخلئ؟

➢او آیتونه پدې معنی کې ډیر زیات دي.

په توحید الربوبیت باندې د نبيﷺ دزمانې مشرکانو اقرار کولو خو د دې باوجود هغوی په اسلام کې داخل نه شول، بلکه رسول اللهﷺ ورسره جګړې وکړې او دهغوی وینې او مالونه یې حلال وبلل، ځکه چې هغوی د الله تعالی سره په عبادت کې شرک کولو او آیتونه پدې باب کې ډیر زیات دي.

### ② توحيد الألوهيت:

د بندګانو په کارونو کې الله تعالى يو ګڼل، لکه دعاء، نذر، حلاله، امېد، ويره، توکل، رغبت، رهبت، او انابت وغيره، چې پدې هر يو عبادت د قرآن کريم نه دليل شته.

دا هغه توحيد دی چې پکې د ښوا نه جګړې شوي او ترقيامته به روانې وي.

### ③ توحيد الذات والأسماء والصفات:

الله تعالى په خپلو نومونږ او صفتونو کې يو ګڼل، الله تعالى فرمايي: ﴿قُلْ هُوَ ٱللَّهُ أَحَدٌ ۝١ ٱللَّهُ ٱلصَّمَدُ ۝٢ لَمْ يَلِدْ وَلَمْ يُولَدْ ۝٣ وَلَمْ يَكُن لَّهُۥ كُفُوًا أَحَدٌۢ﴾[الإخلاص]

**ترجمه:**ورته ووايه چې همدغه الله(چې تاسوېې د نسب پوښتنه کوی)يواځې يو الله دی، الله تعالى بې نيازه دی(چاته حاجت نه لري اوټول مخلوق هغه ته محتاج دي)، نه څوک د الله تعالى نه پيدا دي او نه الله تعالى د چا نه پيدا دی او هيڅوک د الله تعالى سره مساوي نشته.

او هم د الله تعالى دغه قول: ﴿ وَلِلَّهِ ٱلۡأَسۡمَآءُ ٱلۡحُسۡنَىٰ فَٱدۡعُوهُ بِهَاۖ وَذَرُواْ ٱلَّذِينَ يُلۡحِدُونَ فِيٓ أَسۡمَٰٓئِهِۦۚ سَيُجۡزَوۡنَ مَا كَانُواْ يَعۡمَلُونَ ﴾[الأعراف: ١٨٠]

**ترجمه**:الله تعالى لره خايسته نومونه دي، په همدغه نومونو ترې دعاء کوئ، او پرېږده هغه خلک چې د الله تعالى په نومونو کې فساد (تحريف، تکذيب، شرک) کوي، ژر دی چې د خپل عمل سزا به ومومي.

او دالله تعالى داقول: ﴿ لَيۡسَ كَمِثۡلِهِۦ شَيۡءٞۖ وَهُوَ ٱلسَّمِيعُ ٱلۡبَصِيرُ ﴾ [الشورى: ١١]

**ترجمه**:نشته دهغه(الله تعالى)په شان هيڅ شي او هغه اوريدونکی، ليدونکی دی.

## **شرک** (دتوحيد ضد)

**دشرک ډولونه:**

شرک په درې قسمه دي :شرک اکبر اوشرک اصغر او شرک خفي.

**اول: شرک اکبر**(لوی شرک)

داهغه لويه ګناه ده چې الله تعالی يې نه بښي بلکه د دې سره هيڅ قسم عمل فائده نه ورکوي، الله تعالی فرمايي:﴿ إِنَّ ٱللَّهَ لَا يَغۡفِرُ أَن يُشۡرَكَ بِهِۦ وَيَغۡفِرُ مَا دُونَ ذَٰلِكَ لِمَن يَشَآءُۚ وَمَن يُشۡرِكۡ بِٱللَّهِ فَقَدِ ٱفۡتَرَىٰٓ إِثۡمًا عَظِيمًا ﴾ [النساء: ٤٨]

**ترجمه**: يقينا الله تعالی شرک نه بښي اوبښي نور ګناهونه چاته يې چې خوښه شي او چاچې د الله تعالی سره شرک وکړ نو ده(په الله تعالی پورې) ډيره لويه ګناه وتړله.

الله تعالی فرمايي:﴿ لَقَدۡ كَفَرَ ٱلَّذِينَ قَالُوٓاْ إِنَّ ٱللَّهَ هُوَ ٱلۡمَسِيحُ ٱبۡنُ مَرۡيَمَۖ وَقَالَ ٱلۡمَسِيحُ يَٰبَنِيٓ إِسۡرَٰٓءِيلَ ٱعۡبُدُواْ ٱللَّهَ رَبِّي

وَرَبَّكُمۡۖ إِنَّهُۥ مَن يُشۡرِكۡ بِٱللَّهِ فَقَدۡ حَرَّمَ ٱللَّهُ عَلَيۡهِ ٱلۡجَنَّةَ وَمَأۡوَىٰهُ ٱلنَّارُۖ وَمَا لِلظَّٰلِمِينَ مِنۡ أَنصَارٖ ﴾[المائدة: ٧٢]

**ترجمه**: يقينا هغه خلک کافر شوي چې وايي: الله تعالى همدا عيسى ځوی دمريم دی، (حالانکې) عيسي عَلَيۡهِ ٱلسَّلَامُ ويلي چې ای بني اسرائيلو د الله تعالى بندګی وکړئ (کوم چې) زما اوستاسو رب دی، شان دادی چې چا دالله تعالى سره شرک وکړ نو په هغه جنت حرام او ځای يې اور دی او د ظالمانو څوک مرسته کوونکي نشته.

او الله تعالى فرمايي:{وَقَدِمْنَا إِلَى مَا عَمِلُوا مِنْ عَمَلٍ فَجَعَلْنَاهُ هَبَاءً مَنْثُورًا} [الفرقان: ٢٣].

**ترجمه**: او رامخکې به شو مونږ(اراده او قصد به وکړو) د دوی عملونو ته نو وبه ګرځوو هغې لره ګرد خپور کړی شوی.

او الله تعالى فرمايي: ﴿ وَلَقَدۡ أُوحِيَ إِلَيۡكَ وَإِلَى ٱلَّذِينَ مِن قَبۡلِكَ لَئِنۡ أَشۡرَكۡتَ لَيَحۡبَطَنَّ عَمَلُكَ وَلَتَكُونَنَّ مِنَ ٱلۡخَٰسِرِينَ ﴾[الزمر: ٦٥]

**ترجمه**: یقینا تا اوستانه مخکې پیغمبرانو ته(د دې خبرې) وحې شوې وه، که چیرته تا شرک وکړ نو عمل به دې برباد شي او ته به د تاوانیانو څخه یې.

او الله تعالی فرمایي: {وَلَوْ أَشْرَكُوا لَحَبِطَ عَنْهُمْ مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ} [الأنعام: ٨٨].

**ترجمه**: او که چیرته دوی شرک وکړ، نو یقینا برباد به شي د دوی نه هغه څه چې دوی کول.

**شرک اکبر په څلور ډوله دی:**

① **شرک الدعوة:** دلیل د الله تعالی دغه وینا ده: {فَإِذَا رَكِبُوا فِي الْفُلْكِ دَعَوُا اللَّهَ مُخْلِصِينَ لَهُ الدِّينَ فَلَمَّا نَجَّاهُمْ إِلَى الْبَرِّ إِذَا هُمْ يُشْرِكُونَ} [العنكبوت: ٦٥].

**ترجمه:** کله چې دوی په کشتۍ کې سپاره شي نو رابلي الله تعالی لره، اخلاص کونکي وي په دعاء کې او هر کله چې خلاص کي دوی لره وچې ته نو بیا دوی شرک کوي.

## ② په نیت ،قصد او اراده کې شرک کول:

دلیل: الله تعالی فرمايي: ﴿ مَن كَانَ يُرِيدُ ٱلْحَيَوٰةَ ٱلدُّنْيَا وَزِينَتَهَا نُوَفِّ إِلَيْهِمْ أَعْمَٰلَهُمْ فِيهَا وَهُمْ فِيهَا لَا يُبْخَسُونَ ﴿١٥﴾ أُوْلَٰٓئِكَ ٱلَّذِينَ لَيْسَ لَهُمْ فِي ٱلْأٓخِرَةِ إِلَّا ٱلنَّارُ ۖ وَحَبِطَ مَا صَنَعُواْ فِيهَا وَبَٰطِلٌ مَّا كَانُواْ يَعْمَلُونَ ﴾ [هود: ١٥ - ١٦]

**ترجمه:** څوک چې (په خپلو نیکو اعمالو) یواځې د دنیا د ژوند او ښایست اراده لري، مونږ به ورته د خپلو اعمالو بدله همدلته پوره ورکړو چې هیڅ ظلم به ورسره ونشي، خو دغه خلک!، نشته د دوی لپاره په آخرت کې مګر اور او برباد دي هغه څه چې دوی کړي پدې دنیا کې او بي ځایه (باطل) دي عملونه د دوی.

## ③ د تابعداري شرک:

پدې خبره دلیل د الله تعالی دا قول دی ﴿ ٱتَّخَذُوٓاْ أَحْبَارَهُمْ وَرُهْبَٰنَهُمْ أَرْبَابًا مِّن دُونِ ٱللَّهِ وَٱلْمَسِيحَ ٱبْنَ

مَرۡيَمَ وَمَآ أُمِرُوٓاْ إِلَّا لِيَعۡبُدُوٓاْ إِلَٰهٗا وَٰحِدٗاۖ لَّآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَۚ سُبۡحَٰنَهُۥ عَمَّا يُشۡرِكُونَ ﴾[التوبة: ٣١]

**ترجمه**: دوی د الله نه بغیر خپل ملایان اوپیران په خدایۍ سره نیولي وو او مسیح(عیسی) ځوی د مریم یې هم په خدایۍ سره نیولی وو، حالانکې دوی ته امر نه وو شوی مګر د دې خبرې چې دوی د یو الله تعالی عبادت وکړي، پاکې ده هغه لره، د هغه څه نه چې دوی یې ورسره شریکوي.

**د آیت هغه تفسیر چې هیڅ قسم اشکال پکې نشته**: په ګناه کې د ملایانو او پیرانو تابعداري کول، نه د هغوی څخه دعاء طلب کول(څه غوښتل)، لکه چې رسول الله ﷺ عدي بن حاتم رضي الله عنه ته هغه وخت تفسیر کړ، کله چې هغه وویل: مونږ خو د ملایانو او پیرانو

بندګي نده کړې! نو رسول الله صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته وفرمايل: د هغوی بندګي په ګناه کې د هغوی خبره منل دي.

**④ دمحبت شرک :**

دليل د الله تعالى دا قول دی: ﴿ وَمِنَ ٱلنَّاسِ مَن يَتَّخِذُ مِن دُونِ ٱللَّهِ أَندَادًا يُحِبُّونَهُمْ كَحُبِّ ٱللَّهِۖ وَٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓا۟ أَشَدُّ حُبًّا لِّلَّهِۗ ﴾[البقرة: ١٦٥]

**ترجمه**: بعضې خلک د الله تعالى نه بغير خدايان نيسي، داسې محبت ورسره کوي لکه د الله سره محبت او مؤمنان د الله سره ډير زيات محبت لرونکي دي.

## **دويم : شرک اصغر**(کوچنی شرک)

او هغه رياء ده، الله تعالى فرمايي: {فَمَنْ كَانَ يَرْجُوا لِقَاءَ رَبِّهِ فَلْيَعْمَلْ عَمَلًا صَالِحًا وَلَا يُشْرِكْ بِعِبَادَةِ رَبِّهِ أَحَدًا} [الكهف: ١١٠].

**ترجمه:** نو څوک چې د الله عزوجل د ملاقات امید لري، هغه دې نیک عمل وکړي او د خپل رب په عبادت کې دې هيڅوک نه شريکوي.

## **د شرک دريم ډول:شرك خفي**(پټ شرک):

دليل د رسول اللهﷺ دغه وینا: « شرک پدې امت کې په توره شپه، په توره ډبره د تور میږي د مزل څخه هم ډیر زيات پټ دی».

او د پټ شرک کفاره د رسول اللهﷺ دغه وینا ده: «اللَّهُمَّ إني أعوذ بك أن أشرك بك شيئًا وأنا أعلم، وأستغفرك من الذنب الذي لا أعلم».

**ترجمه**: يا الله زه په تا پورې پناهي غواړم د دې نه چې ستا سره څه شريک کړم او زه پرې پوه يم او ښښنه غواړم د هغه څه نه چې زه پرې نه پوهيږم.

## كفر په دوه ډوله دی

لومړی: هغه كفر چې انسان له اسلام څخه وباسي.

او دا په پنځه ډوله دی:

**اول: كفر التكذيب** (دين او پيغمبر ته د دروغو نسبت كول).

دليل دالله تعالى داقول دی:﴿ وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنِ ٱفْتَرَىٰ عَلَى ٱللَّهِ كَذِبًا أَوْ كَذَّبَ بِٱلْحَقِّ لَمَّا جَآءَهُۥٓ ۚ أَلَيْسَ فِى جَهَنَّمَ مَثْوًى لِّلْكَٰفِرِينَ ﴾[العنكبوت: ٦٨]

**ترجمه**:او څوك ډير غټ ظالم دی د هغه چا څخه چې په الله تعالى پورې دروغ وتړي او يا حق ته د دراوغو نسبت وكړي، آيا نشته په جهنم كې ځاي دكافرانو؟!.

**دويم: دانكار او تكبر كفر** سره د تصديق نه.

دليل: دالله تعالى داقول :﴿ وَإِذْ قُلْنَا لِلْمَلَٰٓئِكَةِ ٱسْجُدُوا۟ لِءَادَمَ فَسَجَدُوٓا۟ إِلَّآ إِبْلِيسَ أَبَىٰ وَٱسْتَكْبَرَ وَكَانَ مِنَ ٱلْكَٰفِرِينَ ﴾ [البقرة: ٣٤]

**ترجمه**: او کله چې مونږ ملايکو ته وويل: آدم ته سجده وکړئ، نو هغوی سجده وکړه، مګر ابليس(سجده ونکړه) هغه انکار او تکبر وکړ، او وو له کافرانو نه.

**دريم:د شک او ګمان کفر**

دليل: دالله تعالى داقول دی:﴿ وَدَخَلَ جَنَّتَهُۥ وَهُوَ ظَالِمٌ لِّنَفْسِهِۦ قَالَ مَآ أَظُنُّ أَن تَبِيدَ هَٰذِهِۦٓ أَبَدًا ﴿٣٥﴾ وَمَآ أَظُنُّ ٱلسَّاعَةَ قَآئِمَةً وَلَئِن رُّدِدتُّ إِلَىٰ رَبِّى لَأَجِدَنَّ خَيْرًا مِّنْهَا مُنقَلَبًا ﴿٣٦﴾ قَالَ لَهُۥ صَاحِبُهُۥ وَهُوَ يُحَاوِرُهُۥٓ أَكَفَرْتَ بِٱلَّذِى خَلَقَكَ مِن تُرَابٍ ثُمَّ مِن نُّطْفَةٍ ثُمَّ سَوَّىٰكَ رَجُلًا ﴿٣٧﴾ لَّٰكِنَّا۠ هُوَ ٱللَّهُ رَبِّى وَلَآ أُشْرِكُ بِرَبِّىٓ أَحَدًا ﴾[الكهف].

**ترجمه**: او خپل باغ ته ننوت پداسې حال چې د ځان سره ظلم کونکی وو، ويې ويل: چې زه ګمان نه کوم چې داباغ به برباد (ختم) شي او زه ګمان نه کوم چې قيامت به قائم شي، مګر که چيرته زه خپل رب ته واپس هم شوم، نو د دې باغ نه به د واپسۍ ښه ځای پيدا کړم* د

هغه دوست ورته د خبرو په ترځ کې وویل: آیا تا کفر وکړ په هغه ذات چې ته یې دخاورې، بیا د نطفې(د منی) نه پیدا کړی یې، بیایې درنه سم سړی جوړ کړ، مګر زما رب خو همدغه الله تعالی دی او زه د خپل رب سره هیڅوک نه شریکوم.

**څلورم: داعراض(مخ اړولو) کفر**

دلیل :دالله تعالی داقول دی:﴿ وَٱلَّذِينَ كَفَرُواْ عَمَّآ أُنذِرُواْ مُعۡرِضُونَ ﴾[الأحقاف: ٣]

**ترجمه**: اوکافران خلک د هغه څه نه چې دوی پرې ویرولی شي مخ اړوي.

**پنځم : دمنافقت کفر**

دلیل: دالله تعالی داقول دی: ﴿ ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمۡ ءَامَنُواْ ثُمَّ كَفَرُواْ فَطُبِعَ عَلَىٰ قُلُوبِهِمۡ فَهُمۡ لَا يَفۡقَهُونَ ﴾[المنافقون: ٣]

**ترجمه** : دا پدې وجه چې دوی يوځل ايمان راوړ بيا يې کفر وکړ نو الله تعالی د دوی په زړونو مهر ولګولو، نو دوی اوس نه پوهيږي.

## د كفر دوهم ډول: كوچنی كفر چې مسلمان پرې د اسلام د دين څخه نه ووځي يا د نعمت كفر(ناشكري) كول

دليل د الله عزوجل دغه وينا: ﴿ وَضَرَبَ ٱللَّهُ مَثَلًا قَرْيَةً كَانَتْ ءَامِنَةً مُّطْمَئِنَّةً يَأْتِيهَا رِزْقُهَا رَغَدًا مِّن كُلِّ مَكَانٍ فَكَفَرَتْ بِأَنْعُمِ ٱللَّهِ فَأَذَٰقَهَا ٱللَّهُ لِبَاسَ ٱلْجُوعِ وَٱلْخَوْفِ بِمَا كَانُوا۟ يَصْنَعُونَ ﴾[النحل: ١١٢]

**ترجمه**: او الله تعالی د مثال په توګه بيانوي حال د هغه کلي چې ښه په اطمنان اوسيدل او رزق به ورته د هر ځايه پراخه راته، نو كفر يې شروع كړو د الله تعالی په نعمتونو، پس الله تعالی پرې وڅكه لباس د ولږې او ويرې، په سبب د هغه څه چې دوی كول.

## د نفاق ډولونه

## نفاق په دوه ډوله دی: اعتقادي او عملي

**اعتقادي نفاق شپږ ډوله دی:**

① د رسول الله صَلَّىٰٱللَّهُعَلَيۡهِوَسَلَّمَ تکذيب کول (دروغژنول).

② د بعضې هغه څه تکذيب کول چې رسول الله صَلَّىٰٱللَّهُعَلَيۡهِوَسَلَّمَ راوړي دي.

③ د رسول الله صَلَّىٰٱللَّهُعَلَيۡهِوَسَلَّمَ سره بغض کول.

④ د رسول الله صَلَّىٰٱللَّهُعَلَيۡهِوَسَلَّمَ راوړي شريعت سره بغض کول.

⑤ د رسول الله صَلَّىٰٱللَّهُعَلَيۡهِوَسَلَّمَ په شکست، ياښکته کېدلو خوشحاليدل.

⑥ د رسول الله صَلَّىٰٱللَّهُعَلَيۡهِوَسَلَّمَ فتوحات اوکامیابي بد ګڼل.

**ب عملي منافقت : هو په پنځه ډوله دی:**

کوم چې د رسول الله صَلَّىٰٱللَّهُعَلَيۡهِوَسَلَّمَ پدې حديث کې جمع شوي دي:« آيَةُ الْمُنَافِقِ ثَلَاثٌ: إِذَا حَدَّثَ كَذَبَ، وَإِذَا وَعَدَ أَخْلَفَ، وَإِذَا اؤْتُمِنَ خَانَ " »وفي رواية« وَإِذَا خَاصَمَ فَجَرَ ،وَإِذَا عَاهَدَ غَدَرَ ».

**ترجمه** : د منافق درې علامې دي: کله چې خبرې کوي درواغ وايي، کله چې وعده کوي خلاف يې کوي او کله چې په څه کې امانت ګر وګڼل شي خيانت کوي او په بل روايت کې دي: کله چې جګړه کوي پوچې(ردې بدې) خبرې کوي او کله چې لوظ وکړي، دوکه کوي.

## د طاغوت معنا او د هغه د ډولونو سرونه

پدې پوه شه – الله دې په تا رحم وکړي- چې په بني آدم تر ټولو لومړی فرض په طاغوت کفر کول او په الله تعالی ایمان لرل دي .

الله تعالى فرمايي:{وَلَقَدْ بَعَثْنَا فِي كُلِّ أُمَّةٍ رَسُولًا أَنِ اُعْبُدُوا اللَّهَ وَاجْتَنِبُوا الطَّاغُوتَ} [النحل: ٣٦].

**ترجمه** :او یقینا مونږ په هر امت کې یو پیغمبر رالیږلی وو، چې تاسو د الله تعالی بندګي کوئ او د طاغوت څخه ځان وساتئ.

**په طاغوت د کفر کولو طریقه**: ته به دا عقیده وساتې چې د غیرالله عبادت باطل دی، هغه به پریږدې ،بغض به ورسره ولرې ، دغه عقیده لرونکې ته به کافر ووایې او دښمني به ورسره اعلان کړې.

➢**په الله تعالی دایمان شکل(طریقه)**:داعقیده لرل چې یواځې الله تعالی په حقه د عبادت لایق دی اوبل هیڅوک

د عبادت لایق نشته، او دعبادت ټول اقسام یواځې الله تعالی لپاره کول او دالله تعالی نه بغیر د هیچا عبادت نه کول، موحدینو سره محبت او دوستي لرل او د مشرکینو سره بغض او دښمني ساتل.

**همدیته هغه ابراهیمي ملت وایي چې هغه چا به خپل ځان کم عقل کړی وي چې لدې څخه بې رغبته(مخ ترې واړوي شي**، او همدا هغه اسوه حسنة ده چې الله تعالی په خپل دې قول کې ذکر کړی: ﴿ قَدْ كَانَتْ لَكُمْ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ فِيٓ إِبْرَٰهِيمَ وَٱلَّذِينَ مَعَهُۥٓ إِذْ قَالُوا۟ لِقَوْمِهِمْ إِنَّا بُرَءَٰٓؤُا۟ مِنكُمْ وَمِمَّا تَعْبُدُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ كَفَرْنَا بِكُمْ وَبَدَا بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمُ ٱلْعَدَٰوَةُ وَٱلْبَغْضَآءُ أَبَدًا حَتَّىٰ تُؤْمِنُوا۟ بِٱللَّهِ وَحْدَهُۥٓ ﴾[الممتحنة: ٤]

**ترجمه**: یقینا په ابرهیم عَلَيْهِ ٱلسَّلَامُ او د هغه په ملګرو کې ستاسو لپاره د تابعدارۍ ښه نمونه وه، کله چې هغوی خپل قوم ته وویل: مونږ بیزاره یو ستاسو او د هغه څه نه چې تاسو یې عبادت کوئ د الله تعالی نه بغیر، مونږ په تاسو

کفر کوو او د همېشه لپاره زمونږ او ستاسو ترمېنځ ښکاره دښمني او بغض دی ترڅو چې تاسو په یو الله تعالی ایمان رانه وړئ.

### دطاغوت سرونه

### ① شیطان:

کوم چې د غیرالله عبادت ته بلنه کوي.

دلیل :الله تعالی فرمايي: ﴿ أَلَمْ أَعْهَدْ إِلَيْكُمْ يَٰبَنِيٓ ءَادَمَ أَن لَّا تَعْبُدُواْ ٱلشَّيْطَٰنَ إِنَّهُۥ لَكُمْ عَدُوٌّ مُّبِينٌ ﴾[يس: ٦٠]

**ترجمه**: ای د آدم اولاده آیا تاسو ته ما وصیت نه وو کړی چې تاسو به د شیطان عبادت نه کوئ، یقینا هغه ستاسو ښکاره دښمن دی .

### ② هغه ظالم حاکم چې د الله احکام بدلوي .

دلیل: ﴿ أَلَمْ تَرَ إِلَى ٱلَّذِينَ يَزْعُمُونَ أَنَّهُمْ ءَامَنُواْ بِمَآ أُنزِلَ إِلَيْكَ وَمَآ أُنزِلَ مِن قَبْلِكَ يُرِيدُونَ أَن يَتَحَاكَمُوٓاْ إِلَى ٱلطَّٰغُوتِ وَقَدْ أُمِرُوٓاْ أَن يَكْفُرُواْ بِهِۦ وَيُرِيدُ ٱلشَّيْطَٰنُ أَن يُضِلَّهُمْ ضَلَٰلًۢا بَعِيدًا ﴾[النساء: ٦٠]

**ترجمه** : آيا ته هغه خلکو ته نه ګورې چې ګمان کوي ګويا په هغه څه ايمان لري چې په تا او ستانه مخکې نازل شوي، خو دوی فيصلې وړي طاغوت ته، حالانکې دوی ته حکم شوی وو چې په طاغوت کفر وکړي او شيطان غواړي چې دوی په لرې ګمراهۍ سره ګمراه کړي.

**③ هغه څوک چې د الله دنازل شوي دين نه بغير په بل څه فيصلې کوي.**

دليل: ﴿ وَمَن لَّمْ يَحْكُم بِمَآ أَنزَلَ ٱللَّهُ فَأُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلْكَٰفِرُونَ ﴾ [المائدة: ٤٤]

**ترجمه:** او څوک چې د الله تعالى د نازل شوي قانون نه بغير په بل څه فيصلې کوي همدغه خلک کافران دي .

**④ هغه څوک چې دعلم غيب دعوه کوي.**

دليل : ﴿ عَٰلِمُ ٱلْغَيْبِ فَلَا يُظْهِرُ عَلَىٰ غَيْبِهِۦٓ أَحَدًا ﴿٢٦﴾ إِلَّا مَنِ ٱرْتَضَىٰ مِن رَّسُولٍ فَإِنَّهُۥ يَسْلُكُ مِنۢ بَيْنِ يَدَيْهِ وَمِنْ خَلْفِهِۦ رَصَدًا ﴾ [الجن: ٢٦ - ٢٧]

**ترجمه:** الله تعالی په غیبو عالم دی او هیڅوک د هغه په غیبو نه خبرېږي، مګر هغه استازي چې الله تعالی يې وغواړي، نو مخکې وروسته ترې سخت ساتونکې وي.

**⑤ هغه څوک چې دالله تعالی نه بغیر يې عبادت کېږي او دا پرې راضي وي.**

دلیل : الله تعالی فرمايي: ﴿وَمَن يَقُلۡ مِنۡهُمۡ إِنِّيٓ إِلَٰهٞ مِّن دُونِهِۦ فَذَٰلِكَ نَجۡزِيهِ جَهَنَّمَۚ كَذَٰلِكَ نَجۡزِي ٱلظَّٰلِمِينَ﴾[الأنبياء: ٢٩]

**ترجمه:** او په مخلوق کې چې چا وويل: زه معبود يم نو هغه ته به مونږ د جهنم سزا ورکړو او همداشان سزا مونږ ظالمانو ته ورکوو.

**يادونه:**

پدې خبره ځان پوه کړه چې انسان ترهغې په الله مؤمن نشي جوړیدی ترڅو چې يې په طاغوت کفر نه وي کړی.

دليل د الله تعالى دغه وينا ده: {فَمَنْ يَكْفُرْ بِالطَّاغُوتِ وَيُؤْمِنْ بِاللَّهِ فَقَدِ اسْتَمْسَكَ بِالْعُرْوَةِ الْوُثْقَى لَا انْفِصَامَ لَهَا وَاللَّهُ سَمِيعٌ عَلِيمٌ} [البقرة: ٢٥٦].

**ترجمه** :پس چاچې په طاغوت کفر وکړ او په الله تعالى يې ايمان راوړ نو ده په داسې قوي کړۍ منګولې ولګولې چې نه ماتيدونکې ده.

**الرشد**(سمه لار): د **محمد**صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دين دی.

**الغي** (کږه لار): د أبو جهل دين دی.

**العروة الوثقى** کړۍ: د کلمې طيبې« لا إله إلا الله» ګواهي ده، پدې کلمه کې نفي او اثبات دواړه دي؛ د غير الله څخه هر ډول عبادتونه نفي کوي او يواځې الله تعالى لره هرډول عبادتونه ثابتوي، چې هيڅ شريک ورسره پکې نه وي. والحمد لله الذي بنعمته تتم الصالحات.

# فهرس

